# دقرآن کریم دوقوفو رموز (نښې)

ـ دهرې ژبې ویونکی چه کله خبرې کوی نوچیرته دریږی اوچیرته نه دریږی، کله ډیراوکله لږ ایساریږی اوپه دی ودریدو اُونه دریدوکښې دخبرې پوره بیان اومفهوم کښې ډیرلوی دخل دی .

دقرآن کریم معجز کلام اوعبارت هم دوینا په ډول واقع دی. له دغه وجې نه اَهل علمو د دریدواُونه درید ونښې (علائم) مقررکړی دی چه هغی ته دقرآن مجید دوقوفو رموز وائی .

ضروری خبره ده چه ددی عظیم کتاب لوستونکی ددی رموزو پوره خیال وساتی اُوهغه رموزدادی.

○ ـ چیرته چه خبره پوره شی هلته کښې وړه غوندی دائره وی ، داپه حقیقت کښې غونډه (ت) ده چه د(ة) په هیئت کښې لیکلی شی اوداد وقف تام علامه ده په دی باندی دریدل پکاردی ، اوس ةخونه شی لیکلی مګروړه غوندی حلقه اچولی شی دی ته آیت وائی .

مـ ـ داد وقف لازم علامه ده په دی باندی هرومرو (خامخا) دریدل پکاردی اُوکه چیری څوک ونه دریدنو احتمال

لري چه دخبري مطلب به بل څه شي ددي په پښتو ژبه کښې داسي مثال پوهيدل پکارده چه چاته و ويلي شي ،

(پاسه - مه کينه) چه پکښې د پاسيدو امراوله کيناستو نهي ده نوپه - پاسه - باندي دريدل لازم دي اوکه چيري متکلم ونه دريدنو مخاطب به داسي وګڼي چه( پاسه مه - کينه) چه په هغه کښې به د ودريدو نه نهي اودکيناستود امراحتمال کيګي اويقيناً دابه د قائل د مطلب خلاف وي.

ط - داد وقف مطلق علامه ده په دي باندي دريدل پکاردي دا علامه هلته وي چه کوم ځاي مطلب نه پوره کيګي او ويونکي مزيده هم څه ويناکول غواړي .

ج - دادجائز وقف علامه ده دلته کښې دريدل غوره اونه دريدل جائز دي .

ز - داد مجوّز وقف علامه ده دلته نه دريدل غوره دي .

ص - داد مرخّص وقف علامه ده دلته پيوست ( يوځاي ) لوستل پکاردي ليکن که چيري څوک ستړي شي اوودريګي نوهغه ته اجازه شته ،

معلومه شوه چه په(ص)پيوست لوستل د(ز)په نسبت ترجيح لري

صلے - داد الْوَصْلُ أَوْلٰى (يعني وصل غوره) اختصاردي دلته پيوست لوستل غوره دي .

ق - داد قِيلَ عليه الوَقف خلاصه ده دلته دريدل پكار نه دى.

صل - داد قَدْ يُوَصَلُ علامه ده دلته كله ودريدى شى او كله نه ليكن دريدل غوره دى.

قف - داد قِفْ لفظِ دى چه معنى ئى ده ودريگه او دا علامه هلته استعماليگى چه دلوستونكى دپيوستى وينا احتمال وى.

س يا سكته - داد سكتے علامه ده دلته لگ وخت دريدل پكاردى خوچه تنفّس باقى وى (يعنى ساماته نه شى).

وقفه - داد اوگدى سكتے علامه ده دلته دسكتے په نسبت ډير دريدل پكاردى ليكن چه تنفّس جارى وى (يعنى ساماته نه شى) په سكته او وقفه كښى دا فرق دى چه سكته كښى لگ وخت او په وقفه كښى ډير وخت ودريدى شى.

لا - دلا معنى چه نيشته داعلامه كله خود آيت پورته وى او كله دعبارت دننه كه دعبارت دننه وى نو دريدل بالكل نه دى پكار او كه د آيت پورته وى نو بيا اختلاف دى.

دځينو په نزد دريدل او د بعضو په نزد نه دريدل روادى خوكه څوك ودريد يا ونه دريد په دى سره مطلب كښى څه خلل نه واقع كيگى وقف هلته نه دى پكار چه د عبارت دننه ليكلى وى.

ك - داد كَذٰلِكَ علامه ده يعنى چه كوم رمز (نښه) دى ك نه

وړاندې لیکلی شوی ده دلته کښې دې همغه وکتړلی شي.

۵ ـ داددې علامه ده چه په دې ځای دغیرکوفیینو په نزد آیت ده که چا وقف وکړ نو داعادې (دوباره ویلو) ضرورت نیشته.

∴ ـ داد دریو ټکو (نقطو) وقف نژدې نژدې راځي دې ته معانقه ویلې شي کله خوددې اختصار په مع سره لیکلی شي. ددې مطلب داده چه دا دواړه وقفونه لکه چه معانقه کوې او حکم ئې داده چه په دې دواړو وکښې په یو باندې دریدل پکاردې په بل نه او په وقف کښې د رموز و (نښو) قوت او ضعف ملحوظ ساتل پکاردې.

# د دویم جلد فهرس

## له(١٦) تر (٣٠) پارې

## دسورة الكهف (٧٥)آیت له ابتداء تر پای (آخر) سورة الناس

# د دویم جلد فهرس

## له(۱٦) تر (۳۰) پارې

## دسورة الکهف (۷۵)آیت له ابتداء تر پای (آخر) سورة الناس

بحمد الله تعالىٰ وتوفيقه

# انتهى المجلّد الثّاني - الأخير -

مِنَ الجُزءِ (١٦) إلىٰ (٣٠)

مِنْ بِدَايَةِ الآيَةِ (٧٥) مِنْ سُورَةِ الكَهفِ إلىٰ آخِرِ سُورَةِ النَّاسِ

---

دخداى تعالىٰ په مرسته (مدد) اوتوفيق دويم جلد (آخرى)
پاى (آخر) ته ورسيد له (١٦) تر (٣٠) پارے
دسورة الكهف (٧٥) آيت له ابتداء ترپاى (آخر)
سورة الناس






ص.ب ٣٥٦١ - المدينة المنورة








( ٤٠٠٠/٢٢٢د ) (٤) (٠١)

# د
# قرآن کریم
## ترجمه او تفسیر
## په پښتو ژبه کښې

دویم جلد

له (۱۶) تر (۳۰)

پارې پورې